یو څه لږ کچ سره ګاونډیو هیوادو ته دوام وموند. په ۱۹۹۲م کال د مجاهدینو په واکمن کیدو سره په دې هیله چې جګړې پای ته رسیږي له یونیم میلیونه زیات مهاجر په بیره له پاکستان او ایران نه هیواد ته ستانه شول. تنظیمي جګړې د رزګونو انسانانو د بیځایه کیدنې سبب شوې چې د جګړې له اوره یې تیښته کوله. په ۱۹۹٤م کال په کابل کې د جنرال دوستم ځواکونو په ګډون او د حزب وحدت په پلوي د اسلامي ګوند جګړه له جمعیت سره چې د استاد سیاف د ځواکونو پلوي هم له ځانه سره لرله د کابل ښار د پنځوسوو زرو بیوزلو وګړو د بیځایه کیدنې سبب شوې چې د جلال آباد ښار د شاوخوا سوزنده بیدیاوو کې ترخیمو لاندې تر ۱۹۹۷م کال پورې د نړیوالوسازمانونو په مرستو ژوند کاوه.

لاهم زرګونه انسانان د هیواد په مختلفو سیمو کې د جګړو له امله له بدې ورځې له خپلو کورونو وتي او په ډاډمنو ځایونو کې موقتي ژوند تیروي. همدا و چې په حقیقت کې د هیواد تولیداتو او په تیره د کرنې او مالدارۍ په سکتور کې د پرله پسې کمښت سبب ګرځیدلې دي. جګړې د خلکو د ژوند څرنګوالي ته بدلون ورکړی او د جنائي پیښو وژلو، جرمونو او معیوبیتونو د پراخپدو سبب ګرځیدلي دي.

# کرنه او مالداري

## الف: کرنه:

د افغانستان اقتصاد تل په کرنې او مالدارۍ تکیه لرلې ده او په سلو کې نژدې ۸۵ خلک د کرنې او مالدارۍ په دنده بوخت دي. د اساسي بنسټونو د ویجاړتیا او د هیواد په ګوټ ګوټ کې د میلیونونو په شمیر د ځمکنیو ماینونو له شته والي سره سره، کرنه او مالداري د خوځنده اقتصاد عمده برخه ده. کرنه د افغانستان د اقتصادي پراختیا په پروسه کې وچت ځای لري.

څکه د دغه ژوند بخښوونکي سکتور وده د کرنیزو لاسته راوړنو د زیاتوالي او د هیواد د ډیرو خلکو د ژوندانه د سطحې د ښه والي سبب ګرځي.

د جګړې له کلونو د مخه د هیواد د صادراتي توکیو په سلو کې ۷۲ د کرنې سکتور برابرول. همدا ډول په سلوکې ۳٤ دولتي پانګه اچونې د دې سکتور په واسطه جذب شوې او په سلوکې ٥٦ دولتي عایدات هم له همدې برخې برابریدل. د ۱۹۷٤ - ۱۹۷٥ کلونو کې د هیواد د کرنیزو تولیداتو په سلوکی ۷۱ غنم، جوار، وریشې او وریژو جوړول. میوو او سبو په سلوکی ۲٥ پنبې په سلوکې ٥، ۲ او ګنیو په سلوکي یو

د ټولو کرنیزو تولیداتو برخي جوړولی. غوړي ورکوونکي داني او نور محصولات په لوړه اندازه تولید یدلی. تر کال ۱۹۹۳ په کرنیزو زمکو کې نژدې ۳۵ فیصده لړوالي پیښ شوی دی. حال دا چې په دغه کال په کرنیزو تولیداتو کې د جګړې نه د مخه کلونو په پرتله په سلو کې ۵۰ راټیټیدنه اټکل شوې وه. د (FAO) له ګرارشاتو سره سم د کال ۱۹۹۳ م لپاره د هیواد د خړوبولو سیستم په سلوکی ۲۵ ویجاړ شوی دی چې د آبی زمکو موازې یې ۱،۵ ملیونو هکتارو ته راټیټ کړی دی.

د جګړې د مخه کلونو کې، د افغانستان دولت د کرنې اصلاح شوی تخمونه او کیمیاوې سرې یې د پورپه ډول د هیواد بز ګرانو ته ورکول چې د کرنې د پراختیا بانک په واسطه به تنظیمیدل. دغه سیستم هم د جګړې په کلونو کې تس نس شو. پرله پسې جګړو د کورنیو تولیداتو اندازه راکمه کړه، د خړوبولو سیستمونه او نور اقتصادی لومړنی بنسټونه یې ویجاړ کړل او د تخم او سرې درانیولو او ویشلو او د نورو کرنیزو وسایلو دویش جریان یو مخ بندشو. ډیرې زمکې ناکرلې پاتې شوې او د یوې غوایان له مینځه لاړل او ځنګلونه هم وران شول.

د امنیت او آرامی په بیرته راتګ سره د هیواد په ډیرو سیمو کې کرنیز سکتور مخ په ښه والي روان شوی دی. په وروستیو کلونو (۱۹۹۷ م او ۱۹۹۸ م) کې چې کومه سروې شوې ده په کرنیزو تولیداتو کې زیاتوالی راښیی. که څه هم کرنیز تولیدات د خلکو د لومړنیو اړتیاوو نه څو ځله لاهم کم دي. د (FAO) د ۱۹۹۶ م کال کرنیزه سروې

ثرگندوي چې د اصلاح شوي تخم د حاصلاتو مینځنی برید په هر هکتار زمکې ٦، ٢ تنه دی. هغه نمونې چې په دې را وروسته ١٩٩٤ م او ١٩٩٥ م کلونو کې تجربه شوې دي د حاصلخیزئ اوسط په هر هکتار آبی زمکه کې ٩، ٢ تنه راښيي. (کرنیزه ستراتیژی FAO - ١٩٩٧).

په کرنیز سکتور کې ښځې ستر ځای لري. هغوی د سبو په کر، خیشاوه، د شولو نهالولو، د چرگانو روزل، مالداري او دوریښمو د چینجو په روزنه او تولید کې رغوونکی ځای لری. په کرنیزو هڅو کې د ښځوونډه اخیستل د هغوی په نژادي ډلو او د هغوی د کورني اقتصاد په ثرنگوالی پورې تړاو لري. په ځینو سیمو، لکه نورستان کې ډیرې کرنیزې هڅې د ښځو له خوا ترسره کیږي.

په اوسنیو شرایطو کې اپیم او خشخاش د کرنیزو محصولاتو ستره برخه جوړوي. پخوا به کوکنار په لرې کلیو (چې د دولت د نفوذ او ثارنې له ساحې نه لرې وو) کرل کیدل. د قانون د ځواک د تنفیذ نشتوالی، ناوړه اقتصادی حالت، د تولیدی موسساتو ویجاړتیا او اپیموته دورځ په ورځ زیاتیدونکی غوښتنی سره یو ځای د کوکنارو د کرد پراختیا سبب گرځیدلي دي. ننگرهار، کندهار، هلمند او بدخشان د اپیمو ستر تولیدونکی ولایتونه گڼل کیږی. د تریاکو د کلني کر د هغې سروې سره سم چې په ١٩٩٨ م کال کې چې د مخدره موادو د ثارنی موسسی (UNDCP) له خوا وشوه د اپیمو تولید په ١٩٧٨ م کال کې ٢٠٠ تنه و، اما په ١٩٩٧ م کال کی یې ٢٨٠٤ تنوته زیاتوالی موندلی دی.

## ب: مالداري:

مالداري او د څارويو روزنه د کرنيز سکتور ستره برخه جوړوي. په راتلونکي کې په هم دغه مشغولا د هيواد اقتصادي پراختيا او پر مختګ کې ستر ځای ولري. د مالدارۍ له لارې کيدای شي چې خوراکي مواد برابر او پولي عوايد لوړ کړای شي. کوچيان او هغه خلک چې د هيواد په ګوټ ګوټ کې د څارويو په روزنه بوخت دي د خپل د ژوندانه اړتياوي له همدې لارې برابروي. د هيواد مشهور اهلي څاروي پسه، وزه، غويي، آس، خر، کچره او نور دي.

له جګړې نه د مخه افغانستان په نيويارک او لندن کې د قره قل بازارونه په انحصار کې لرل چې د بهرنيو اسعارو د راتلونې دپاره ښه چينه ګڼل کيده.

د افغانستان حکومت له دې برخې نه د لازياتې ګټې په خاطر د قره قل د توليد د پراختيا لپاره په جدي اقداماتو لاس پورې کړ چې د څارويو د روغتيا او د څرځايونو د ساتنې او څارنې په برخه کې د علمي څيړنو سبب وګرځيد. په پايله کې د هيواد په شمال، ختيځ او سهيل کې دولتي فارمونه تأسيس شول او په ټولو ولسواليو کې د څارويو کلينيکونو پراختيا ومونډله.

د جګړې دوولسيزو د ولتي فارمونو او د شخصي مالدارۍ کړو وړو ته نه جبيره کيدونکي زيانونه رسولي دي. د (FAO) د حيواني پروژې د ۱۹۹۷م کال ګزارش څرګندوي چې د رسيدلو زيانونو اندازه په سلو کې له ۴۰ تر ۵۰ د يوې په غوايانو کې، په سلو کې ۶۷ په نورو څارويو کې

او په سلوکی ۷۰ د قره قل په تولید کی اتکل شویدی. د جگړې او قومی دښمنیو په سختیدو د شمال په سیمو کې د قره قل تولید او د پسونو روزنه کې ډیر زیات کموالی راغلی دی. د جګړې او ږد یدل، د کوچیانو او مالدارانو تګ راتګ یې محدود کړیدی.

د (FAO) د څارویو د تولید د ګزارش په اساس چې په کال ۱۹۹۷م کې خپور شو د هېواد څاروي ۳،۷ میلیونه غوایان، ۲۲ میلیونه پسونه، ۹ میلیونه وزې، ۳۷۰۰۰۰ آسونه، یو میلیون خره، او ۲۸۰۰۰۰ اوښان اټکل شويدي. د ملی اقتصاد ددغی سترې برخې بیارغلونه د څارویو د روزنې او د تولید توان د زیاتولو او پراخوالی ته اړدی چې بزګران وکولای شی په خپله د خپلو څارویو شمیر ته د یوې عایداتی سرچینې په توګه زیاتوالی ورکړي.

## ځنګلونه او څرځایونه:

د هیواد ځنګلونه او ورشوګانې هم د ژوند د چاپیریال د ښکلا او سلامتیا او هم د بهرنیو میلمنو او توریستانو د راتللو له لارې د پریمانه عوایدو د لاسته راوړنې او د څارویو د روزنې لپاره ستر اهمیت لري. له یو پلوه د ځنګلونو له لرګو په کور جوړولو او بهرته د هغو له صادرولو نه ګټه اخیستل کیږي او له بله پلوه د هیواد اوچت او آسمان څک غرونه د ځنګلونو په واسطه په ښکلو او لیدنې وړ سیمو بدلون موندلی چې د خارجی توریستانو د هڅونې او تخنونې سبب ګرځی. د ځنګلونو نورې ګټې د هوا پاکول، دویجاړوونکیو نیزونو مخنیوی او وحشی څارویو ته پناه ورکول دي. د دولتی زمکو په هکله د ۱۹۸۹ کال د ارقامو سره

سم، ځنګلونو نژدې ۹، ۱ میلیونه هکتاره زمکه نیولې ده چې د هیواد د ټولې خاورې په سلوکې ۹، ۲ جوړوي. د کونړ او نورستان ځنګلونه د هیواد تر ټولو مشهور او ښکلي ځنګلونه حسابیدل. د پکتیا ځنګلونه ګڼ ورګاو تر ډیره د څېړیو او ولودونو په واسطه پوښل شوي وو.

خوافسوس چې د غې ویجاړوونکې جګړې د هیواد ښکلي او ګڼ ځنګلونه په لومړني ګام په تباهۍ کې ښکیل کړل. د پخواني شوروی عساکرو له خوا ځنګلونو ته د اوراچونې پالیسي له یوې خوا او له بله پلوه د لرګو د تاجرانو نه مړیدونکې هوا او هوس د هیواد ګڼ او ښیرازه ځنګلونه د نابودۍ برید ته ټیل وهل. د حکومت او قانون د نشتوالي له امله لاهم د سیمې خلک ښبرازه او ځواني ونې په ډیرې بې دردۍ وهي او د نیشتوکي متاع په بدله کې یې د پاکستان بازارونو ته وړاندې کوي.

د هیواد په شمال او لویدیځ کې د پستې او غرني نښترو ځنګلونه وهل شوي او له هغونه د سون د لرګو لپاره ګټه اخیستل کیږي.

غیر رسمي ګزارشونه وایي چې هره ورځ ۳۰ تر ۴۰ لارۍ لرګې د چمن له لارې د پاکستان خاورې ته ننوزي. ددې ځنګلونو د اهمیت او سر شارو عوایدو په نظر کې درلودلو سره ښایي افغاني مقامات په راتلونکې کې د ځنګلونو له وهلو په کلکه مخنیوی او د ساتنې او څارنې لپاره یې اقدام وکړي.

# طبیعي سرچیني او انرژي

د طبیعي زیرمو د لرلو له پلوه افغانستان نسبتاً بډای دی. د هیواد ستري زیرمې طبیعي ګاز، وسپنه، مس، لاجورد، مالګه، د چونې او مرمرو ډبرې، د ډبرو سکاره او نور دي. همدا ډول یورانیم، سپین زر، سره زر، سلفر، نیکل، لتیوم، مګنیشیم فلورایداو نور کانونه په کافي اندازه په هیواد کې پیدا کیږي. د هیواد د اوسپنې او مسو زیرمې د نړۍ د ریمې ستري زیرمې ګڼلې کیږي. د هیواد طبیعي ګازله ۱۰۰ تر ۱۵۰ میلیون متر مکعبه پورې اټکل شوي وچې پخوا یې د هیواد د ټولو صادراتو په سلوکې ۵۰ برخه جوړوله.

او د نړیوالې بیې نه په ټیټه بیه پخواني شوروي ته صادریده، د طبیعي ګاز پلورل د جګړې په کلونو کې بند شول. د ګاز تولیداو وراندې کول د مجاهدینو د عملیاتو او شوروي عساکرو په واسطه د ګاز د څاګانو د ورانولو له امله بند شول. د ګاز د څاګانو د ویجاړتیانه را رسیدلي زیانونه په کال کې ۲۰۰ میلیونه ډالره اټکل شوي دي (د ملګرو ملتو د انرژۍ د محاسباتو کالني).

د ډبرو سکاره د هیواد دوهمه زیرمه جوړوي چې د هغو حجم ۱۰۰ میلیونه ټنه تاکل شوي او ۴۰۰ میلیونه ټنه اټکل شوي وي.

اټکلونه د هیواد د تیلو زیرمې ۲۰۰ میلیونه بیرله ښیي پخوانی شوروی پلان درلود چې په کال کې ۵۰۰۰۰ متریک ټنه تیل د هیواد په شمال کې چاڼ کړې چې دا کار د جګړې له امله وځنډید.

په اوسني افغانستان کې د برقي انرژۍ د کموالي نه رامینځته شوي تنګسې اقتصادي مهمو هڅوته تاوان رسوي او د ژوند چاپیریال اغیز منوي ده کابل د هایدرولیکي برق له فابریکي پرته چې ۱۰۰ میګاواټه قدرت لري یو شمیر واړه د انرژۍ هایدرولیکي موسسات د هیواد په ځینو مهمو ښارونو کې لا فعال دي. همدا اوس د برق د تولید ۲۲ فابریکې په هیواد کې فعالې دي چې ۱۷۵ میګاواټه برق په هره ګړۍ کې تولید وي. د ۱۹۷۸ کال نه مخکې هیواد په سلو کې یوازې شپږ خلکو د برق له انرژۍ نه ګټه اخیستله چې دغه رقم د جګړې په کلونو کې زښت کم شوی دی.

د کابل بریښنا د انرژۍ مرکز د تنظیمي جګړو له امله زښت ډیر تاوان لیدلی دی. په ۱۹۹٤م او ۱۹۹٥م کلونو کې د کابل په ښار کې بریښنا نه وه او د ښار په ډیر برخو کې د بریښنا مزي غلا شول. د بریښنا نشتوالی نه یوازې د کابلیانو توري شپې بې لا تورتمې کړې بلکه ژوندیې د کابل پرښاریانو تریخ کړی و ځکه ډیرو خلکو د خپلو کورونو د تودولو لپاره په ژمی کې او د ډوډۍ د پخلی لپاره له بریښنا نه کار اخیست. د طالبانو په لاس د کابل د نیولو نه وروسته، د کابل د بریښنا انرژۍ د ملګرو ملتونو د سازمان او غیر دولتي مؤسسو په مرسته بیا رغول شویده او اوس د کابل په ډیرو ناحیو کې بریښنا شته.

# صنایع او لاسي کارونه

صنعتی اداري او د صنعتی تولیداتو زیاتوالی د هیواد په اقتصادي پراختیا او د سړي سر درآمد په اوچتوالی کې د زښت ډیر اهمیت درلودونکی دي. د صنعتی کولو پروسه د صنعتی انقلاب له پیل نه راپدیخوا د اقتصاد پوهانو ترمینځ مطرح وه ځکه دغه سکتور د صنعتی هیوادونو سړي سرعاید یې په چټکۍ سره لوړکړی دی. د یوې تولنې صنعتی کیدل د ښارولا پراختیا سره همغاړه وي. صنعتی فابریکې که کارونه پیدا کوي، د هیواد تولیدات زیاتوي او د کلیونه ښارونو ته د مهاجرینو ستونزې هم مینځ ته راوړي. د وګړو یو زیات شمیر د ښه تره او سوکاله ژوند د ترلاسه کولو په خاطر لویو ښارونو ته هجرت کوي چې وکولای شی په صنعتی فابریکو کی پر ښه معاش کار وکړی. له بلی خوا هغوی کولای شی د ژوند له آسانتیاوو، لکه ترانسپورت، بریښنا د څښلو اوبو، ښوونځي، مدرسه او روغتون څخه -چې په ښارونو کې شته دی- برخمن شی.

څنګه چې په ډیرو وروسته پاتې هیوادو کې تجربه شوې ده، د خلکو هجرت ښارونو ته یو لړستونزې، لکه ګڼه ګوڼه، د ژوند د چاپیریال

# پیلامه

اقتصاد په لغت کې د انډول مانا لري. اقتصاد هغې پوهنې ته ویل کیږي چې بشري کړه وړه د موخو (هدفونو) او کمیابو وسایلو تر منځ - چې ډول ډول ګټې ترې اخیستل کیږي - د اړیکې په څیر څیړي. دا تعریف که څه هم بشپړ نه دی او اقتصاد پوهان د دې پوهنې لپاره ډول ډول تعریفونه لري چې په دې رساله کې یې له راوړو ډډه شوې.
اقتصادي اړیکو د بشر له پیدایښت نه تر دې دمه د انساني ټولنې سره ملګرتیا لرلې ده. که تاریخ ته وګورو د ډیرو پراختیا غوښتنو، خونړیو جګړو، لښکر کشیو، او زور چلولو ریښې اقتصادي عوامل وو.
د تولید زمینو ته لیوالتیا، کارلټول، لاډیره ګټه کول، داړتیا وړ څیزونو پلورل او رانیول، د نرخ ټارل، د ژوند د سطحې پراختیا او نور، هغه

ککړتیا او د جرمونو زیاتیدل او نور مینځ ته راوړي. نو ځکه بهتره ده چې د ښارونو تر څنګه کلي په هماغه توګه پراختیا ومومي.

د افغانستان صنعتي پراختیا د امیر شیر علیخان پیر (۱۸۶۹ - ۱۸۷۹م) ته رسیږي. لومړی ځل په افغانستان کې امیرشیر علیخان د وسلو جوړولو فابریکه جوړه کړه. وروسته د امیرعبدالرحمن خان او زوی یې امیر حبیب الله خان په پیر کې یو شمیر صنعتي فابریکې، لکه دوسلې جوړولو، بوټ ګنډلو، د سکې د ضرب، څرمنو، او نساجي فابریکي تأسیس شوې شاهي حکومتونو او وروسي د محمد داؤد خان حکومت د صنعتي سکتور د پراخولو په خاطر زیاتي هڅې وکړې، ثقیله صنایع د دولت په واک کې وې او د هیواد د صنعتي ادارو په پراختیا کې خصوصي سکتور په تنګسه کې و.

له جګړې نه دمخه د هیواد صنایع دودې په لومړي سطح کې وچې د سپکو صنایعو په چوکاټ کې یې د کرنیز سکتور مواد او د اړتیاوړ څیزونه او نور ضروري شیان تولیدول. یو شمیر لویې صنعتي فابریکي، لکه د پنبې سمنتو، کیمیاوي سرې کارخانې، د جنګلک انجنیري کارخانې او د وسپنې ورکشاپ د کابل ښار، بلخ، بغلان، او پروان، کې نوې جوړې شوې وې. اکثراً صنعتي تولیدات لکه تېوکر، لباس، بوټ، فرنیچر، سمنټ، خښتې او پلاستیکي شیان او نور داړتیاوړ جنسونه د هیواد سپکو صنایعو په واسطه تولیدیدل.

د افغانستان د صنعتي پراختیا پروسې په لومړیو کې د دولتي صنایعو د تأسیس لپاره تېنګې هڅې کیدلې چې دغه کار داخلي خصوصي

پانگه اچونې یې سوداگرۍ ته منحصرې کړې وې. د ۱۹۷۰ په لسیزه کې محمد داؤد خان د هغه وخت جمهور رئیس داسې انگیزې خلق کړې چې د دولتي صنایعو تر څنگه شخصي صنایعو ته پراخوالی ورو بخښي. په همدې خاطر د هیواد د پانگه اچونې قانون تصویب شو. خو افسوس چې د ۱۹۷۸م د ثور د ۷ کودتا نه وروسته دا قانون فسخ او ټولې شخصي صنایع، ملي اعلام شوې په ۱۹۷۸م کال کې د هیواد د ملي ناخالص تولیداتو (GNP) په سلو کې ۱۷ یې صنعتي سکتور تولیدول. په ۱۹۹۰م کال کې د ۳٦۰ په شاوخوا کې د سپکو صنایعو فابریکې د کابل په صنعتي پارک کې قسماً فعالې وې او څلویښت زره کارگرانو په کې کار کاوه.

او نژدې له ۲۰ تر ٦۰ صنعتي فابریکې د هرات، کندهار او مزار شریف په ښارونو کې فعالې وې.

د دوو لسیزو جگړې له امله د هیواد صنایعو درانه زیانونه وزغمل په تیره د ۱۹۹۲ کال وروسته د کابل په ښار کې اکثره دولتي او خصوصي صنایع ویجاړ، مالونه او وسایل یې چور او تالا شول. نورې صنعتي کارخانې د هیواد په گوټ گوټ کې له څو کلونو راپدې خوابندې دي.

په ځینو ښارونو کې چې سپکې صنایع د جگړې د سوزنده لمبو نه خوندي پاتې دي په ډېره ټیټه سطحه په نسبي توگه فعالیت لري. د دغو صنایعو فعالیت د اړتیاوړ د او موادو د کمبود، د بازار او د لازمې څارنې د نشتوالي په وجه ورځ په ورځ لا پسې محدود یږي.

لاسي صنایع یوازیني صنایع دي چې د جگړې کلونو په ترڅ کې یو څه

فعالې وې. دا سکتور په کلو او بانډوکې د کم بضاعته کورنیو لپاره اضافي عايدات برابروي.

ډیر کله ښځینه افغانانې د دغه ډول لاسي صنايعو د پرمختګ په جریان، لکه، غالۍ او بدل، تغر او بدل، ریشمه ګنډل، وریښمین کاري، خامک ګنډل او نورستر ځای درلودلی دی. د لاسي صنايعو تولیدات غالۍ، تغر، څرمن، وړۍ او وړین شیان، بخاري، خرادي، ولډنګ کاري، د موټرو او نورو ماشین الات د بیارغاونې ورکشاپونه، د خښتو بټۍ او نور دي چې لاتراوسه فعالیت لري.

## د کار بازار:

په افغانستان کې د کار ډیر ځواک په شخصي کارونو بوخت دی. هغه ستر کارونه چې خلک یې سرته رسوي ډیری په کرنیز سکتور او کورنۍ سوداګرۍ او تریو بریده بهرنۍ سوداګرۍ پورې اړه لري. د خلکو زیات شمیر د ننه په هیواد یاګاونډیو هیوادو- لکه ایران او پاکستان کې په مزدورکارۍ بوخت دي د جګړې زیاتیدل او اقتصادي وروسته پاته والی له امله په دولتي او خصوصي سکتور کې د کار موندلو زمینې بیخي زیاتې کمې شوې دي. یوازې په کندهار کې چې د ځوکالو را په دېخوا امنیت برقرار دی او سوداګري وده کړیده، د مزدورکارۍ له لارې د عاید زمینې په سلوکې ۱۵ زیاتوالی موندلی دی. ترټولو ناوړه حالت دفیض آباد په وروسته پاتې ښارکې دی چې د تیرکال په ترڅ کې د مزدور کارۍ له لارې عاید په سلوکې ٤٨ را کښته شوی دی. د مزار شریف ښارکې چې د دې وروستیو کلونو په ترڅ کې دویجاړوونکو

جګړو شاهدو، د مزدور کارۍ له لارې عايدات په سلوکی ٤٣ را ټيټ شوي دي. د هرات او جلال آباد په ښارونو کې وضعيت په بدلون کې و.
د سارې په توګه د مزدورکارۍ له لارې عايد د ۱۹۹۸م کال د اکتوبر او دسمبر په مياشتو کې مخ په زياتيدو و، او د ۱۹۹۹ کال د جنورې او مارچ په مياشتو کې يې نزولي تګ لورى درلود. چې له عواملونه يې ښايي په ژمي کې د کارګر لپاره د تقاضا لږيدل وي.
په هيواد کې د کارد ځواک لپاره دغوښتنې د ورځ په ورځ کمښت برعکس، په پوځي ځواکونو کې د خلکو ګمارل د پراختيا په حالت کې وو. په دولتي شعباتو، صنايعو او نورو رسمي ادارو کې وزګارتيا په زياتيدو کې ده. ډير دولتي کارکوونکي چې خپل عايدې له لاسه ورکړې په شخص کارونو: لکه ټکسي چلولو، مزدورکاري، او يا پرچون پلورلو لاس پورې کړې دي.



# کورنۍ او بهرنۍ سوداګري

په مستقیم یا غیر مستقیم ډول د شیانو بدلول چې د یو واسطه، عامل، لکه پیسو په ذریعه سرته رسي دغه عملیه سوداګري بولي. له سوداګرۍ څخه ګټې د موجودو مصرفي شیانو د شمیر او ډولونو زیاتول او په تولیدي هڅوکي د تخصص لازیات رواجول. پر ته له سوداګرۍ نه به هر وګړی او هیواد مجبور وي خپلې ټولې اړتیاوې له هغو سرچینونه برابرې کړي چې یې په لاس کې لري د جګړه ځپلي افغانستان په تس نس او ورشکسته اقتصاد کې سوداګري اساسي ځای لري په تیره اوس چې د هیواد د منځنۍ طبقې اکثرو خلکو په دې کار لاس پورې کړی دی.

افغانستان ټول اولیه مصرفي شیان له بهرنه واردوي. د پرله پسې جګړو او د ځینو مهمو لویو لارو له نه خلاصون سره سره په ټول هیواد کې کورنۍ سوداګري روانه ده. د سالنګ د لویې لارې بند پاتې کیدل په وروستیو کلونو کې یې د سیمه والو سوداګرو لپاره ډیرې ستونزې پیدا کړې دي. ځکه هغوی توان نه لري چې خپل کرنیز تولیدات له شمال نه کابل ته اوله دې لارې یې نورو ولایتونو ته ولیږدوي او د اړتیاوړ شان دپخوا په شان له کابل نه شمال ته یوسي. سره له دې ډول تنګسو چې کورنۍ سوداګري یې ډیره ځپلې ده. دسیمې سوداګر په راز راز ډولونو تجارتي مالونه هغو سیمو ته - چې د دښمنو ډلو په

اقتصادي محاصره کې دي- ور رسوي.

بهرنۍ سوداګري چې د کرنيزو محصولاتو صدور او د بهرنيو مالونو په هکله تل ادامه لرلې ده. طبيعي ګاز (چې پخوا به پخواني شوروی ته صادريده او اوس بند دی) ، تازه او وچه ميوه، غالي، پوست، دچار تراش لرګي، سابه او نور په اوسنيو شرايطو کې د هيواد له عمده صادراتو څخه شميرل کيږي. له جګړې د مخه صادراتي مواد، لکه وړۍ، پنبه، طبيعي ګاز، ميوې، غالۍ او نور تريوه بريده د مرکزي دولت په کنترول کې و. په ۱۹۹۲ م کال کې د هيواد صادرات په سلوکې ۸۵ او واردات په سلوکې ۶۹ کم شوي وو.

د هغو بهرنيو مالونو سوداګري چې د دوبۍ له لارې راځي او د پيښور او کوټې بازارونه بيا صادريږي د پراخوالي په حال کې دي. له ۱۹۹۲ تر ۱۹۹۶ کلونو پورې په ورځ کې نژدې دوه يا درې باروړونکي الوتکې تجارتي مالونه د جلال آباد هوايي ډګر کې ښکته کيدل چې وروسته په لاريو کې تورخم او له هغه ځايه د اوښ او کچر په واسطه د پيښور بازارونو ته ليږديدل. له ۱۹۹۶ کال نه وروسته د طالبانو تحريک دغې لارې ته تريوه بريده بدلون ورکړ. همدا اوس د بهرنيو تجارتي مالونو ډيره برخه د کندهار له لارې د پاکستان په کوټه کې چمن ته ليږديږي.

په دې تجارتي مالونو کې اکثره تلويزيون، ويديو، تيپ، د کور لوښي او نور هغه شيان دي چې د پاکستان په بازارونو کې په لوړه بيه خرڅيږي.

د يوې سروې مطابق چې د نړيوال بانک او (UNDP) په مرسته په ۱۹۹۷ کال کې ترسره شوې وه، د افغانستان او پاکستان تر منځ د

سوادګرۍ ټوله بیه ۵ . ۲ بلیونه ډالره اټکل شوې وچې ٦ . ۱ بلیونه ډالره یې هغه تجارتي مالونه جوړوي چې د افغانستان له لارې پاکستان ته قاچاق کیږي.

د پاکستان حکومت د مختلفو پړاونو په ترڅ کې د پاکستان له لارې د. ترانزیتي تجارت د آسانتیاوو محدودلو لپاره په یواړ خیزو اقداما تو لاس پورې کړ چې د هغو بهرني تجارتي مالونو چې په غیر قانوني ډول د پاکستان بازارونو ته رارسیږي د ورود مخنیوی وکړي. تر اوسه ۳۵ قلمه جنسونه د افغانستان د ترانزیتي تجارت له لست نه لغو شویدي. خو په عمل کی د پاکستان د دولت دا اقدام د تجارتي مالونو د قاچاق په مخنیوی کې چندان ګټور نه دی تمام شوي. په اوسنیو شرایطو کی افغانستان په وارداتو متکی دی. دوارداتي مالونو ډیره برخه خوراکی مواد ، پوښاک ، دواګاني ، تیل او نور دي. د تجارتي مالونو په څنګ کې ماشین آلات او نظامي اړتیاوې هم وارد یږي.

تجارتي کسر له په سلوکې ٤٨ نه په کال ۱۹۷۸ کې تر په سلوکې ٧٤ ته په کال ۱۹۹۲ کې رسیدلی و. له کال ۱۹۹۲ نه وروسته دغه تشه څو واري زیاته شویده. اصلي سبب یې د صادراتو د سطحې راټیټیدل او د بهرني صنعتي مالونو دوارداتو ورځ په ورځ زیاتوالي دی. کومې ګټې چې د بهرنۍ سوداګرۍ نه ترلاسه کیږي ډیره برخه یې د زمکو او. کورونو په رانیولو په داخل کې مصرفیږي او یا د پاکستان په بانکونو کې زیرمه کیږي. (د تولیدي هڅو لپاره د هیواد په دننه کې پانګه اچونه نه کیږي).

په وروستيو کلونو کې افغانستان له دې سوداګرۍ څخه نه جبران کيدونکي تاوانونه زغملي دي.
ټول تجارتي سرحدونه له منځنی آسيا سره (پرته د تورغونډۍ له بندره) تړل شوي دي. نو ځکه د افغانستان بهرنۍ سوداګري يوازې له پاکستان او يو څه هم له ترکمنستان سره صورت مومي. په اوسنيو شرايطو کې د هيواد د لومړ  نيو اړتياو وپه سلوکې ۹۰ يې له پاکستان څخه وارديږي.

# مالي سياست او دولتي مصارف

مالي سياست د حکومت د پاليسي جوړولو وسيله ده چې د ملي غوښتنو د سطحې د بدلولو او د محصولاتو ترمنځ د انډول پيداکولو لپاره کارول کيږي او د مالياتو او د دولت د بودجې د مصارفو له لارې عمل کوي. له مالي سياست نه سمه ګټه اخيستنه عمومي زيرمو ته زياتوالي وربخښي او د دولت خزانې ته کافي اندازه پانګه ورتلولي چې وروسته د دولتي مصارفو په ډول د خلکو جيبو ته ورځي.
څنګه چې دود وه د عامه سکتور مصارف د دولتي بودجې له لارې تمويليده دا سکتور د مرکزي حکومت، ولايتي حکومت، ښاروالۍ ګانو، بانکونو، روغتونونو، مکتبونو، مدرسو، پوهنتونونو او د نورو دولتي تاسيساتو پر مصارفو شامليږي. په ۷۰ لسيزه کې د محمد داؤد

خان حکومت د دولتی سکتور د پیاوړي کولو او ټینګښت لپاره جدی هڅې وکړي. په درنو صنایعو، سرک جوړولو، هوایی ډګرونو، خړوبولو سیستم، د بریښنا بندونو، روغتونونو د مکتبونوو دانی، او د طبیعی زیرمو په راایستلو کې د افغانستان د جمهوري بودجې په واسطه پانګې اچولې کیدلي. ولایتی حکومتونو او ښاروالی ګانو د دولت د خزانې لپاره مالیې ټولولې.

د مالیې وزارت مسؤولیت درلود چې د دولت لپاره مالیه را ټوله کړي، پور واخلی، معمولی مصارف وټاکي، او د پلان وزارت په ملګرتیا انکشافی بودجه ترتیب کړي. د پراختیایي هڅو د مصارفو، د بهرنیو مرستو د تنظیم او ویش او د پراختیایي بودجې تطبیق د پلان وزارت له مسؤولیتونو څخه وې. که څه هم په اوسنیو شرایطو کې وزارتونه او مامورین شته دي خو د هغوی د دندې په زمینه کې هڅې زښتې ډیرې محدودې شوې دي.

جګړې د هیواد د مالیودراټولولو سیستم یی سره پاشلی دی. نو څکه د هیواد په بودجه کې لویه تشه رامنځته شوې ده. له یوې خوا داخلی عایدات راکم شویدي. له بلی خوا له ۸۰ په سلو کی زیات دولتی مصارف په پوځی هڅو کې په مصرف رسیږي. له ۱۹۹۲ م کال نه را پدیخوا د اجتماعی خدمتونو د مصارفو لپاره هیڅ ډول بودجه نه ده اختصاص شوې. مالیې چې د قوماندانانو او سیمه ییزو مقاماتو له خوا را ټولیږي د هغوی په شخصی چارو یا په پوځی چارو لګول کیږي.

## دبانکداری سیستم:

پخوا د هیواد د بانکدارۍ سیستم دومره وروسته پاته او محدود و چې په مشکل یې کولای شوای د معاصر بانکدارۍ نظام لومړنې مشخصات ترسره کړي چې و کولای شي اقتصادي ثبات او وده رامنځته کړي. عصري بانکونه د پورورکوونکي او پوراخیستونکي ادارو په څیر هغه مالي اړیکي راچاپیرې کړي چې له خپلو ورځنیو هڅو څخه گټه ترلاسه کوي. د تجارتي بانکونو د پیدایښت (چې د خپلو عوایدو ستره برخه د سود له لارې لاسته وروړي) سره بانکداري هڅو پراخوالی وموند. په پایله کې د پیسو اندازه هم زیاته شوه.

نن ورځې بانکونه د اقتصادي نظامونو نه بیلیدونکي برخه گڼل کیږي او ټول پولي او مالي کاروبار د هغوله لارې صورت مومي.

دافغانستان مالي سیستم د مالي، رسمي او غیر رسمي ادارو لرونکی دي چې یوله بله نژدې اړیکې سره لري. د هیواد مرکزي بانک د افغانستان بانک د پیسو دادارې، کنترول او وړاندې کولو، د هیواد بهرني اسعارو د زیرمو برابرول، او د نوروپولي هڅو مسوولیت په غاړه لري. ټولي مالي ادارې، لکه تجارتي بانکونه، پراختیایي بانکونه او نورې مالي ادارې د بیمې د کمپنیو په شمول د دولت په کنترول کې دي. د جگړې له پیل نه پخوا د افغانستان بانک مرکزي بانک د خپلو کریدتونو پلان او د شپږ نورو بانکونو پې تطبیقول چې د هر کال په پیل کې د داخلي تولیداتو د جریان په بنسټ اټکل کیده او د بهرنیو تجربو په اساس برابرېده. په ۹۱- ۱۹۹۰ کال کې د مرکزي بانک پورونه

عوامل دي چې انسانان او حکومتونه لا ډير هڅوته ليواله کوي.
د اقتصاد پوهه د انسان لومړنيو اړتياوو، لکه اوبه، خوراک، پوښاک او نورو په لټولو او برابرولو ټينګار کوي. تجربه راښيي چې که د انسان دغه بنسټيزې اړتياوې پوره شي نورې غوښتنې لکه امنيت او د مال او سر ساتل را برسيره کيږي او چې دغه بشري غوښتنې هم ترسره شي نورې غوښتنې، لکه د لا ډير مالونو ترلاسه کول، حشمت او جلال، مينه او محبت او نور راپورته کيږي. انسان تل غوښتنه لري تر هغه څه چې يې لري لا ډير وګټي.
په پر مختللې نړۍ کې د کور، موټر، تلويزيون، يخچال درلودل په لومړنيو اړتياوو کې شميرل کيږي. خو په وروسته پاته هيوادو کې ډير لږ وګړي پر دغو اسانتياوو لاس بري دي. څومره چې مدنيت پرمخ درومي، ورسره د خلکو غوښتنې هم تل مخ په زيا تيدو وي. په همدې اساس د خلکو د ژوند د آسانتيا لپاره نوې ټکنالوژي ورځ په ورځ وړاندې کيږي. نن د زرګونو وګړو ځای کمپيوټر نيولی دی او د زرهاوو نورو لپاره يې د کار او ګټې زمينه برابره کړې ده.
له بده مرغه انساني نړۍ د بيعد التی او ډول ډول نابرابر يونه ډکه ده. که د ځمکې په يوه ګوټ کې انسان له مادي نعمتونو څخه خوند اخلی په بل ګوټ کې د يوې مړۍ ډوډۍ په هيله زرګونه انسانان خپل ژوند له لاسه ورکوي. د افغانستان په جګړه ځپلي هيواد کې لا هم خلک دوچې ډوډۍ په تکل کې دي. د عصري ژوند له نعمتونو او نوې تکنالوژۍ څخه بې برخې دي. دا هيواد چې لا پخوا په وروسته پاتې هيوادو کې

۹۰٤ بلیونو افغانیو ته د ۳۰۷ بلیونه پلان شویو افغانیو په بدل کې رسیدل.

د بانکي فعالیتونو ډیره برخه د کابل په ښار کې تمرکز درلود چې د بهرنۍ سوداګرۍ ستره برخه او نور تجارتي فعالیونه له دې ښاره تنظیم کیدل. وروسته بانکونو څو محدودې څانګې په لویو ښارونو کې پرانیستلې چې د هیواد د پولي سیستم دودې او پراختیا په لوري یونیک اقدام ګڼل کیده.

د هیواد ستر بانکونه: د افغانستان بانک (۱۹۳۹)، د کرنې د پراختیا بانک (۱۹۵۹)، ملي بانک (۱۹۳۲)، د صادراتو د پراختیا بانک (۱۹۷٦)، د صنعتي پراختیا بانک (۱۹۷۱)، رهنی او تعمیراتي بانک (۱۹۵۵)، او پښتني تجارتي بانک (۱۹۵٤).

په افغانستان کې د بانکونو د پراخیدو په لار کې له سترو خنډونو نه یو پربانکونو د دولت کنترول و. د بانکدارۍ نوی قانون چې په ۱۹۷۵ کال کې تصویب شوی و په نظر کې یې لرل چې ټول بانکونه ملي او د هیواد اقتصاد ته وده ورکړي. دا اقدام د وخت حکومت ته دا توان ورکړ چې په ځینو شخصي لویو صنایعو کنترول پیدا کړي او د دولت د اوږدې مودې پروګرامونو ته پیاوړتیا ور وبخښي.

پرته د سروزرو له زیرمو (۰۰۰، ٦٦٥ اونسه) د افغانستان بانک زیرمه ٦۹، ۲٤٤ میلیون ډالرو ته په ۱۹۸۹ کال کې رسیده.

په ۱۹۷۸ کال کې د هیواد ټول بانکونه د ملي بانک په ګډون چې د هیواد تر ټولو پخوانی او تر ټولو ستر تجارتي بانک دی د کمونیستي

رژیم له خوا ملي اعلام شول. دې اقدام دافغانستان د بیوزله خلکو ژوند اغیزمن کړ. د وخت حکومت د پرله پسې فشارونو او د دا ډول ناسنجول شویو پالیسیو په اثر ډیرو داخلي پانګه والو د تیښتې لاره غوره کړه او یا یې خپلې پانګې بهرنیو بانکونو ته ولیږ دولې. دا اقدام د هیواد د مالي او بهرنیو اسعارو د زیرمو د چټک کمښت سبب وګرځید.

## پیسې او یې جلبه تورم:

هر هغه شي چې د تبادلې د واسطې په توګه د ټولو له خوا منل شوی وي او د ارزښت د واحد په څیر، د شیانو د بیې ثرګندونکی وي پیسې نومول کیږي. له ډیرو لرغونو پیرونو را په دیخوا ډول ډول شیان لکه سپین زر او سره زر د ذاتي ارزښت او هم د دوام او په ساتلو او لیږدولو کې د آسانتیا په دلیل د پیسې ځای نیولی دی.

پولي تورم د بیو زیاتیدلو ته ویل کیږي په داسې ډول چې د ټاکلې اندازې پیسو د خرید قدرت د کموالي سبب وګرځي.

تورم له نړیوالې جګړې وروسته د اکثرو اقتصادونو یو له وتلو ځانګړتیاوو څخه دی او په همدې خاطر یې د اقتصاد پوهانو پام ځانته رااړولی دی.

سرساموونکی پولي تورم چې له ۱۹۸۹ م راپدیخوا راروان دی د جګړې د کلونو په ترڅ کې د دولتي اداروو د تیت وپرک کیدلو سره یو ځای یې د افغانستان بانک د هڅو زمینې محدودې کړې دي. په پایله کې د اسعارو د تبادلې آزادو بازارونو (شخصي صرافي) په چټکۍ سره پراخوالی وموند او د هیواد د پولي تبادلاتو ډیره برخه تنظیموي. په

اوسنیو شرایطو کې د تجارتي کزیدتونو پورونه او نور پولي فعالیتونه د دغه بازار له لارې سر ته رسیږي. دا سعارو بازارونه په کابل او نورولو- یو ښارونو، لکه هرات، کندهار، جلال آباد او مزار شریف کې درگرده پولي خدمتونه برابروي ډ بهرنیو اسعارو د تبادلې په گډون د بهرنۍ سوداگرۍ لپاره هم خدمات سرته رسوي.

## په هېواد کې د اسعارو د تبادلې درې نرخونه:

(۱) بانکي بیه چې د مرکزي دولت له خوا ایښودل شوې ده.

(۲) د ملگرو ملتو بیه چې له بانکي نرخ نه لوړه او د آزاد بازار له بیې لږه وي. (۳) د آزاد بازار نرخ چې اکثراً د صرافانو پرلاس تنظیمیږي.
د افغانیو د مبادلې نرخ په امریکایي ډالرو له ۹. ۳۷ افغانۍ د یوه ډالر په بدل په ۱۹۷۹م کال کې ۶۶۱ افغانۍ د یوه ډالر په بدل په ۱۹۹۰م کال کې، ۱۵۰۰۰ افغانۍ د یوه ډالر په بدل په کال ۱۹۹۶م کې او ۴۲۰۰۰ افغانۍ د یوه ډالر په بدل د کال ۱۹۹۹ په لومړیو کې بدلون موندلی دی. سره له دې چې د افغانیو نرخ په کابل او د طالبانو ترولکې لاندې نورو ښارونو کې نسبي ثبات موندلی دی، په شمال کې د افغانیو پولي ارزښت مخ په کمیدو و. همدا اوس دوه ډوله افغاني بانک نوټونه د هېواد د شمال په بازارونو کې په چلند کې دي.

(۱) هغه بانک نوټونه چې پخوا د مرکزي دولت له خوا چاپ شوي وو،

(۲) هغه بانک نوټونه چې د جنرال دوستم په رهبرۍ د شمال جنبش په واسطه چاپ شوي وو. د دوستم بانکنوټونه د لومړیو بانکنوټونو په تقریباً نیمه بیه خرڅیږي.

وروستيو کې سرته رسېدلې ده تورم د ۱۹۷۹ - ۱۹۹۶ م کلونو ترمينځ يوز فيصدو ته لوړ شوی دي. دغه د پرله پسې تورم پروسه د هيواد د زيات شمير خلکو ژوند له ګوابن سره مخامخ کړی دي. د جګړې د لومړی لسيزې ترڅ کې د اړتياوړ لومړنيو موادو بيې درې واره پورته ختلې وې. مګر په وروستيو کلونو کې د دې دول شيانو نرخونه په سر-سامونکی دول جګې شوې دي. په ۱۹۹۸ م کال کې يوې کورنۍ ۳۰۰۰ وارې زياترو عوايدو ته تر ۱۹۷۸ م کال اړتيا لرله.

ديو

کيلو اوړوبيه له ۱۰ افغانيو په ۱۹۷۸ م کال کی ۳۰۰ افغانيو ته په ۱۹۹۱ م کې، ۸۰۰ . ۲ افغانيو ته په ۱۹۹۶ م کال کې، ۹۹۰۰ افغانيو ته د ۱۹۹۷ م کال د مې په مياشت کې، ۱۳۲ . ۱۱ افغانيو ته د ۱۹۹۸ م کال د دسمبر په مياشت کې زياتوالی موندلی دی. د کابل په ښار کې يو تن مزدور کار چې د کورنۍ غړي يې او وتنو ته رسيږي مجبور دی چې د خپلو د عوايدو نيمايی يوازی دو چې دودۍ په رانيولو ولګوي. د ښوونکيو او نور ملکي ما مورينو مياشتنی عايد په هيڅ صورت د هغوی د يوې هفتی لګښتونه نه پوره کوي.

د هيواد په شمالي سيمو کې د بدخشان او باميانو د وروسته پاتو ولاياتو په ګډون د نرخونو بی کچه لوړتيا د ډيرو اقتصادی مصيبتونو سبب شوي دي. يو کيلو غنم چې د ۱۹۹۷ م کال د دمئی په مياشت په کابل کې په ۱۳۰۰۰ افغانيو خرڅيدل په مزار شريف کې د هغې بيه ۲۵۰۰۰ افغانۍ او په فيض آباد کې ۲۹۰۰۰ افغانۍ وه.

# ترانسپورټ او ملکي هوا نوردي

د هيواد د ريزمريز شوي اقتصاد په بيارغاونه او پراختيا کې ترانسپورټ ډيره ستره ونډه لري. دا سکتور که په سمه توګه پراختيا و رمي کولی شي چې کلی پربناړونو پورې ونښلوي او د هيواد په دننه او بهرکی اقتصادي، اجتماعي او فرهنګی اړيکی مينځته راوړي. همدا ډول يو عصري ترانسپورټی سيستم د صنعت په پراختيا ا ر د خلکو د ژوند د سطحی په ښه والی کې غټ ځای لري.

په هيواد کې د وسپنې پټلی نشته. نو ځکه ټول ترانسپورټی فعاليتونه د لاريو موټرو په واسطه سرته رسيږی چې ښايي له بيخي ورانو شويو لويو لارو ځخه تېرې شي. په هېواد کې نژدې ۱۷۰۰۰ کيلو متره خام او پوخ سړک شته دی چې له هغی جملی ځخه ۲۶۵۰ کيلو متره يې عمده لويې لارې جوړوی. دا لويې لارې اکثر ولايتونه په کابل پورې تړی او افغانستان له ګاونډيو هيوادو سره ( پاکستان د تورخم او سپين بولدک له لارې ايران او ترکمنستان د اسلام کلا او تورغنډۍ له لارې، ازبکستان او تاجکستان د حيرتان بندر له لارې او شيرخان بندر له لارې) نښلوي.

البته په وروستيو کلو کې داندخوی له آقينه بندر، د تخار له ای خانم او د بدخشان له اشکاشم نه په ډير سطحی او محدود ډول هغه هم اکثراً د پوځی انتقالاتو په منظور ګټه اخيستله کيږي. د جهاد په کلونو کې د

شاه سلیم لاره چې د بدخشان ولایت د پاکستان په چترال پوری نښلوی جوړه شوه دا لاره چې دي دوو کالو راهیسی د موټرو په مخ تړلې ده یوازې د دري میاشتو لپاره ترې ګټه اخیستل کیږی. د هیواد ډیر ولایتونه او ولسوالی د خامه او صعب العبور ولارو په واسطه د ښارونو له مرکزونو سره تړل شوي دي چې اغلباً د موسمی بارانونو او ویجاړوونکو سیلابونو په اثر بندیږي.

لومړي او دوهمو پنځه کلنو پلانونو ( ۱۹۵۵ تر ۱۹۶۷ ) د عمده لویو لارو په جوړولو ټینګار درلود. د سالنګ لویه لاره او تونل په ۱۹۶۰ لسیزه کې د پخوانی شوروی په مرستو جوړ شول.

د کابل- کندهار لویه لاره چې اوږدوالی یې ٤٨٣ کیلو مترو ته رسیده د امریکا (USAID) په مرستو جوړه شوې وه.

د هرات- تورغنډۍ او کابل تورخم لویی لارې هم د خارجی هیوادو په مرستو جوړې شوې وې. دورانوونکو جګړو او په دوو وروستیو لسیزو کې د پوځی فعالیتونو په اثر د هیواد ډیرې لویې لارې او عمده سرکونه تخریب شویدي.

له بلی خوا د سمی ښارني نشتوالی، بی کچه ګټه اخیستل او د سرکونو له تر میمولو سترګی پټول د هغو په ورانولو کې یې زیاتوالی راوړی دی. همدا ډول په لویو لارو کې د مختلفو ډلو د تلاشی د پاټکونو موجودیت د تجارتی مالونو لیږدول یې د هیواد نورو سیمو ته مشکل کړي دي.

په کلیو کې آس، خر او کچر د ترانسپورتی عمده وسایلو څخه ګڼل

کیږي. د خامه او پلیو لارو وضعیت د وروستیو کلونو په ترڅ کې وخیمې شوی دی. څرنګه چې د مواصلاتی لارو د بیارغاونی لپاره دولتی پلانګذاري نشته. د ملګرو ملتونو مؤسسات او بهرنی او داخلی غیر دولتی سازمانونو د سرکونو، پلونو او پلچکونو په ترمیم چې د هیواد په ځینو سیمو کې ډیر شدید ضرورت موجود و لاس پورې کړی دی.

دوه نړیوال هوایی ډګرونه د کابل او کندهار په ښارونو کې شته دی. د محلی هوایی ډګرونو شمیر دیرشو ته رسیږی چې احتمال لری یومیدان په هر ولایت کې موجودوي.

د کابل، شینډنډ او هرات هوایي ډګرونو د جګړو په اثر شدیدې صدمې لیدلې دي. له جګړی نه دمخه دوه د هوایی چلند سترو شرکتونو د آریانا او باختر الوتنی په نومونو د هیواد په دننه او بهر د خلکو د مالونو په لیږدولو بوخت وو. په کال ۱۹۸۵ م کې دا دوه شرکتونه یو ځای شول.

د رسمی احصائیو مطابق د کابل هوایي ډګر په ۱۹۹۰ کال کې ۱۹۶۰۰۰ تنه مسافرو او ۱۸۰۰۰ تنه محمولو ته رسیده ګی کوله.

د ۱۹۹۰ م لسیزی په لومړیو کې خیبر ایرلاین (Khaiber Airline) د ننګرهار والی حاجی عبدالقدیر په واسطه جلال آباد او بلخ ایر (Bulkh Air) د جنرال دوستم په واسطه د مزار شریف په ښارکی جوړ شوی وُ چې د طالبانو په لاس د جلال آباد او مزار شریف د نیول کیدونه پس دواړو سقوط وکړ.

همدا اوس د آریانا شرکت الوتکې د کابل ښار، جلال آباد او کندهار نه الوزی بهرنی تجارتی مالونه له دوبۍ او د منځنی ختیځ له هیوادونه دننه هیواد ته رالیږدوي چې بیا وروسته د پاکستان بازارونو ته قاچاق کیږي. د آریانا شرکت داخلي پروازونه يې د طالبانو ترولکی لاندې ښارونو ته هم پیل کړي دي. په تأسف چې د هیواد پستی نظام بیخی له مینځه تللی دی او د هیواد ددغې اجتماعی خدمتونو برخې د بیارغاونې لپاره سولی او د یو قوی مرکزی حکومت جوړیدو ته اړتیاده.

## مواصلات او اطلاعات:

جګړې د هیواد اقتصاد دغې عمده برخې ته هم سخت زیان رسولی دی. سیمه وال مقامات، مرستندوی سازمانونه، لکه ملګری ملتونه او غیر دولتی مؤسسات له بی سیم او مخابرې څخه ګټه اخلی. په ۱۹۷۹ م کال د ۲۳۶۸۰ شمیره تیلفونونه د هیواد په دننه کې د استفادې لپاره موجود و.

په ۱۹۸۶ م کال کې رادیو یی آخذې ۵، ۱ میلیونه او تلویزیونی ۱۱۵۰۰ اټکل شوی و. د هیواد په ځینو سیمو کې مقامات او مؤسسی د ستلایټ تیلفون (د مصنوعی سپوږمیو والا) څخه له هیواده بهر سره ارتباط نیسی. د هیواد رادیو تلویزیون مرکز د کابل پر ښار په راکټ ورولو کې ویجاړ شو. په اوسنیو شرایطو کې د شریعت راډیو چې مخکې د کابل راډیو په نامه یادېدله او یو شمیر واړه راډیو یی مرکزونه د مختلفو ډلو په واسطه خبرونه او اطلاعات خپروي. دا راډیوګانې

اکثراً د اړوندو مقاماتو پیغامونه او تبلیغات نشر ته سپاری. په وروستیو کلونو کې د ملګرو ملتونو مؤسسې د یونیسیف او ماین پاکونې برخې یونو چا په ګډون د بی بی سی راډیو د «نوی کور، نوی ژوند» په نامه تعلیمی پروګرام لپاره چې په پښتو او دري ژبو خپریږي لازمې مرستې برابروې. دا پروګرامونه د ماین، لومړنی روغتیا، ښوونې او روزنې د پوهولو په هکله ښوونیز پیغامونه خپروي چې د خلکو دا جتماعی پوهې سطحه وده وکړي. یو شمیر جریدې او مجلې د مختلفو ډلوله خوا خپریږي چې د اړوندو ډلو د عقیدو او آرمانونو بیا - نوونکي دی.

## کور جوړول:

د ملګرو ملتونو د پراختیایی پروګرام دفتر (UNDP) د اټکل سره سم تر کال ۱۹۹۳ تقریباً ۳ . ۲ میلیونه داستوګنی کورونه په افغانستان کې موجود وو چې د هغو نیم میلیون یې بیا جوړولو ته اړتیا لرله.
د مدهشو او خونړیو جګړو په اثر چې د ۱۹۹٤ تر ۱۹۹٦ کلونو په ترځ کې د کابل په کوځوکی پیښې شول د ملکی او شخصی ودانیو نژدې ۸۰ په سلو کې ړنګې شوې. د کابل د بیوزلو خلکو لپاره یې د سرپناه ستونزه لاسترد کړینده. د ۱۹۹٦م په دسمبر کې کومه اقتصادی، اجتماعی سروی چې د ناروې هیواد د بیوزلۍ پر ضد د مبارزی مؤسسه (ACF) او د کلیسا د مرستو مؤسسی له خوا ترسره شوی و، ثرګندوي چې د ۲۰٤ , ۱۱ کورنیو له جملې له ۵۳ تر ٦۳۵ کورنیو پورې په کورونو کې په شریکه ژوند درلود او له هغو په سلکو کې ۷٤ کرایه

نشین وو. په منځنۍ توګه یوې کورنۍ کولای شول له یوه یا دوو خونو څخه استفاده وکړي.

په نورو ولایتونو کې دولتي او شخصي ودانۍ د ویجاړېدواو رژېدو په درشل کې دي. سختو بمباریو او د ړندو راکټونو ورولو د جګړې په دوولسیزو کې د لرې پرتو کلیو او ښارونود ورانۍ باعث ګرځېدلي دي.

په کندهار کې د حیرانوونکي ورانیو، او د زمکښیو ماینونو دشته والي باوجود د نفوسو شمیرېې درې چنده زیات شوی دی. برسیره پردې نژدې ۷۵۰۰۰ مهاجر له سرحدنه پورې غاړه دې ولایت ته د بیرته ستنیدو په انتظار کې دي. د مزار شریف په ښار کې د کلیونه ښار ته د مهاجرو بهیر د جګړې په کلونو کې زښتې ډیرې ستونزې رامینځته کړې وې. دا ښار د ۴۰۰۰۰ تنو له پاره پلان شوی و.

د استوګنې کورونو بیرته جوړول د ډیرو افغاني کورنیو د سختو اندیښنو سبب شوی دی. د او مومواد و بیه او دوداني جوړولو مصارف دومره لوړ ختلي دي چې د افغانستان د بیوزله او جګړې ځپلیو کورنیو له واکه بهر دي. د مخه د کابل ښار له پاره ماستر پلان دا پارتمانونو په جوړولو تینګار درلود چې نه یې شوای کولای اوسنۍ غوښتنې ترسره کړي. په وروستیو کلو کې خصوصي سکتور، په تیره د متنفذو اشخاصو او افرادو یو شمیر کورونه یې د دولتي ماستر پلان ته له پام کولو پرته ودان کړیدي. ډیرا پارتمانونه، لکه میکروریونونه د کابل د جګړو له امله کنډواله شوېدي.

په ښارونو کې د سر پناه جوړول عمده ستونزه ګڼل کیږي.

شمیرل کیده د جگړې کلونو په ترڅ کې کنډواله شوی دی. له یوې خوا د ګټې زمینې محدودې شوې او له بلې خوا د زیرمو لړوالی او د پانګه اچونې نه تشویق د اقتصادي پرمختګ مخنیوی کړی دی. ډیر ملی پانګه وال له هیواده تللی، کارخانی ویجاړې شوې، مالونه یې لوټ شوي او د مالیې ټولولو سیستم او په پرمختیایي هڅو کې د دولت د بودجې ویش تس نس شوی دی.

دارساله چې په ډیره ساده او عام فهمه ژبه برابره شوې د هیواد اقتصادی حالت په کلی ډول نه څیړی ځکه چې دا ډول کار لا ډیرو څیړنو ته اړتیالري. اصلی هدف دادی چې ځوان نسل د هیواد د اقتصادی سرچینو او مبادیو په هکله پر څه وپوهیږی او پر خپل ټولنیز او شخصی ژوندانه د دې کور ګډې جګړې تاثیر تر څیړنې لاندې ونیسي.

و ما علینا الا البلاغ

عبدالحق امیری

اسلام آباد

ځکه له یوی خوا هغه مهاجرین چې په ښاري ژوند روږدي شوي دي ښارونو ته راستانه کیږي او له بلې خوا د ترانسپورتی، ښوونیزو روغتیایي لومړنی خدمتونو، کارلتهون او نورو آسانتیاوو نشتوالی له کلیونه ښارونو ته د هجرت سبب ګرځی. له ځو کلونو راهیسې ملګری ملتونه او نور غیر دولتی مؤسسات د کابل، هرات، جلال آباد او کندهار ښارونو کې بیوزلو خلکو ته د هغوی داستوګنی کورونو په بیر ته جوړولو کې مرسته رسوي. مګر دغه ستونزه تر هغو چې یو سهی او دقیق پلان هغه هم د حکومت له پلوه طرح او عملی نه شی ددې ډول پراګنده مرستو له لارې به حل نشی.

## بیوزلی او سیمه ییزې ناانډولی:

د فقر (بیوزلی) کلمه مطلق او نسبی مفهوم لري. د بیوزلی مطلق مفهوم د ژوندون دادامې لپاره د شخص د حداقل عوایدو د سطحی بیان ته ویل کیږي او له یو شمیر عواملو، لکه د ژوند ادامې لپاره د خوراکي مصارفو حداقل او له ارزانو لارو هغې ته د رسیدلو څخه خبرې کوي. د فقر نسبی مفهوم د شخص اقتصادی وضعیت د اړوندې ټولنې د نورو افرادو سره څرګندوي. د بیلګې په ډول د کابل په ښارکې که د یوه سړي عواید د هغه د لومړ نیو اړتیاوو له حداقل څخه زیات وي مګر د کابل د نورو ښاریانو په پرتله د ټولو نه په ټیټه سطح کې ځای ولري نو دغه شخص ته فقیر (بیوزلی) ویل کیږي. په افغانستان کې د خلکو اکثریت د مخ پرودې ګاونډیو هیوادو دوګړو په پرتله فقیر ښکاره کیږي.

په افغانستان کې د بیوزلۍ اولاس تنګۍ د اندازې تشریح چې د بحران په حال کې دی. که څه هم مشکل کاری دی لاکن د بشري پروژو او پروګرامونو د پلانګذارۍ د طرحی په خاطر چې د زیاتو شوو خلکو عاجلې اړتیاوې څرګندې کړي ګټور به وي.
په افغانستان کې د فقر او لاس تنګۍ ستر علت په ابتدایي کرنه اتکا ده. د نفوسو د پرله پسې زیاتیدو او دهیواد له بهرنه د مهاجرینو د بیر ته ستنیدو سره د زمکی مالکیت ورځ تر ورځې لاوړو کی کیږي په داسی حال کې چې د زراعتی زمکې نوعیت، خړوبولو سیستم، څړځایونه او نور د کرنې وسایل مخ په کمیدو دي. څنګه چې مخکې وویل شول د خلکو په سلو کی ۸۰ خپل د ژوند اړتیاوې له کرنیز سکتور څخه تر لاسه کوي. د خلکو د ژوندانه د سطحی ښیګڼه او پراخول، په تیره د ښځو او ماشومانو د کورنیو د عوایدو په ودې، غذایي تامین او روغتیایی لومړیو خدمتونو پورې تړاو لري. د خلکو د عوایدو د سطحی پرله پسی کمښت د ژوند د معیار د راټیټیدو سبب ګرځی چې د اکثرو خلکو پیاوړتیا د هغو د لومړنیو اړتیاوو د پیدا کولو او برابرولو کې محدودوي.
د یو قوی حکومت په نشتوالی کې چې وکولای شي د قیق ارقام راغونډ کړي د فقر معیار تاکل او لیکه کښل زښت ډیر مشکل دي.
د جګړې له پیل نه د مخه په سلو کی له ۲۰ تر ۴۰ خلکو د فقر له لیکی هم کښته ځای درلود. له بده مرغه نن د خلکو اکثریت فقیر او تنګ لاسي دي. د ادارو او اقتصادی او اجتماعی بنسټونو له سقوط سره، د

محلي حکومتونو ظرفیت د اجتماعي خدمتونو پیاوړتیا لپاره له مینځه تللی دی.

جګړي ډیري ورانی رازیږولی دي، د کونډو او معیوبینو په شمیر کې یې زیاتوالی راوړی دی او ډیر مهاجرتونه او بیځایه کیدنې یې مینځته راوړې او د خوراکې موادو د کمښت د ستونزو سبب ګرځیدلی دی.

ویل کیږي چې د ۱۹۹۶ کال په ژمي کې د کابل په ښارکې خلکو خپل اولادونه په جوماتو کې پریښودل چې څوک پیدا شي او د هغو مسؤلیت په غاړه واخلي او په دې ډول د لوږې له لاسه د مړینې له خطر څخه وژغورل شي. دولتي مامورین په میاشتو میاشتو معاش نه اخلي او لویه تشه د ملکي مامورینو د عوایدو او مصارفو ترمینځ پیدا شوې ده.

کومه سروې چې په کال ۱۹۹۷ کې د ملګرو ملتونو د مؤسسو او ملکي مامورینو په واسطه ترسره شوه، د عادي مامور میاشتنی معاش ۱۵ ډالره او د هغه میاشتني مصارف ۳۷ ډالره اټکل کړیدي. همدا علت دی چې د کابل په ښارکې ډیرو کورنیو د خپل کور د مالونو په خرڅولو لاس پورې کړ او دهغو لږ شمیر په هغو مرستو چې له بهرنه یې د خپلوانو له لارې لاسته ورو ړی شپې سبا کوي.

اقتصادي وضعیت له یوې سیمې تر بلې او حتی له یوې ولسوالی تر بلې په هماغه یوه ولایت کې ډیر توپیر پیدا کوي. په ختیځ او سهیل کې د خارجي مالونو تجارت او قاچاق پاکستان ته لاپسې پراخ شوی دی او دا کار تر یو ځایه په دې سیمو کې د اقتصادي وضعې د ښیګڼې سبب ګرځیدلی دی. په هرات کې له پاکستان سره تجارتي اړیکي وروسته له

هغې چې دا ښار د طالبانو په ولکه کې راغی - مخ په زیاتیدو وې.
هرات له ایران او ترکمنستان سره ګډې پولې لري. د بدخشان لرې پروت
ولایت یوازې د تخار له لارې د هیواد له نورو سیمو سره تړاولري او د
درې میاشتو لپاره د پاکستان له چترال سره د سوداګرۍ اړیکې لري
چې په وروستیو کلونو کې د آس او خره په واسطه سرته رسیدې.
د بامیانو وروسته پاتې ولایت او د هزاره جاتو لرې پرتې سیمې د تیرو
کلونو جګړو په اثر سختې زیانمنې شویدي. بامیان تر یو کال زیاته
موده په اقتصادي محاصره کې و دا محاصره د طالبانو په لاس د
بامیانو له نیولو نه وروسته پای ته ورسیده.
فقر او تنګ لاسی د بدخشان او بامیانو په وروسته پاته ولایتونو کې مخ
په زیاتیدو دي. د خلکو اکثریت د خپل ژوند اړتیاوې د کرنې له لارې
لاس ته راوړلی چې د هوا په ښه والي، د باران په اندازې او د زراعتی
وسایلو په شته والی تکیه لري. د بدخشان په ځینو ولسوالیو کې د
ډوډۍ په ځای له وچو توتانو ګټه اخیستل کیږي. په وروسته پاته کلیو
کې د پېسرلی په موسم له غرنیو سبو نه استفاده کیږي.

# د خوراکي موادو شته والی

د هیواد کرنه هر کال د موسم د ناوړتیا ، طبیعي آفتونو او پرله پسې جګړو او د هغو د اغیزو په اثر ډیر زیانونه زغمي. د میلیونونو ځمکنیو ماینونو شته والی، د نفوس زیاتیدنه، د زراعتي ځمکو د مالکیت راکمیدنه، او د خړوبولو سرچینو د ورځ په ورځ او نور زراعتي وسایلو کمښت په هیواد کې د خوراکي موادو د لږوالي سبب کیږي.

افغانستان یو غرنی هیواد دی چې د هغې په توپوګرافي بدلونونو د هوا وضعیت بدلون مومي چې د هیواد په زراعتي سیستم کې د پرله پسې بدلونونو او اوښتنو باعث ګرځي، د هیواد د خوراکي وضعیت څیړنه چې د ملګرو ملتونو د مؤسسو، لکه د نړۍ غذایي پروګرام، یونیسیف، د نړۍ روغتیایي سازمان او یونوچا په واسطه د ۱۹۹۷ م کال د مې په میاشت کې وشوه د افغانستان د اړتیاوړ خوراکي مواد یې ۱ . ۳ میلیون ټنه اټکل کړي دي. د نوموړې څیړنې سره سم د غذایي موادو کمبود ۳ . ۱ میلیون ټنه په کال ۸۷-۱۹۹٤ کې اټکل شویدی.

د واردو شو یو خوراکي موادو اندازه په ۱۹۹٦ م کال او ۱۹۹۷ م کال کې ۸۳۰۰۰۰ ټنو ته رسیده. دا رقم د ۶۸۰۰۰۰ ټنو په حجم د خوراکي موادو یوه تشه په ۱۹۹٦ م کال کې راښیي. ددې رقم مطابق هر افغاني وګړي نشي کولای چې دورځې له ۵۰۰ ګرامو زیات مواد مصرف کړي. د ۱۹۹۷ م کال په سپتامبر کې د ښاغلي نواز شریف

دولت د طالبانو له حکومت سره يو تړون تصويب کړ چې د هغه مطابق افغانستان کولای شوی تر ۶۰۰۰۰۰ ټنه غنم د پاکستان د بازارونو له نرخ څخه په لږ لوړه بيه له پاکستان نه وارد کړي.

د هيواد ځينی سيمې په تيروژميو کې د خوراکی موادو له سخت کمښت سره مخامخ شويدي. په ۹۶-۱۹۹۵ کلونو کې په کابل کې وضعيت تر هغو څوچنده لا زيات وخيم و. په شمال کې لرې پرتې سيمی او د هيواد مرکزی برخی د ډول ډول ناروغيو چې د کرنې حاصلاتو ته تاوان رسوی، او ويجاړونکو سيلابونو له پلوه نه رغيدونکی زيانونه ليدلي دي، په دې سيمو کې دغذايی موادو د کمبود باعث گرځيدلي دي. د افغانستان په شمال کې د جگړې له اوږديدو سره د کرنی د پراختيا زمينه له مينځه تللې او د کرنی محصولات ورځ په ورځ مخ په کمښت دي. که څه هم د هيواد په بازارونو کې په کافی اندازه خوراکي مواد شته دي خو عام خلک بې د خريد قدرت نه لري ځکه د هغوی عايداتی سرچينی يا بيخی له مينځه تللې او ياې په مراتبو کموالی موندلی دی.

پخوا دولتی مامورينو له دولتی کوپونونو استفاده کوله. دې مرستې هغوی د زياتيدونکی تورم په مقابل کې ژغورل. همدا ډول دولت به نانوايی گانو ته د سونگ مواد او اوړه په راټيټه بيه برابرول او د هغو په بدله کې د ډوډۍ بيه يې په مناسب حد کې ټاکله. د ۱۹۹۲ م کال نه وروسته کوپون نور خپل ارزښت لـه لاسه ورکړی و، ځکه نـه مرکزي حکومت او نه ولايتی حکومتونو کولای شول چې خوراکی مواد څنگه

چې په کوپون کې تاکل شوي وو برابر کړي اوويشي. همدا اوس ډيرو نانوايانو سره د کابل او جلال آباد په ښارونو کې د (WFP) او نورو غير دولتي مؤسسو له خوا مرستې کيږي چې وچه ډوډۍ د بيې په تخفيف سره په زرګونو بيوزلو خلکو خرڅې کړي.

په اوسينو شرايطو کې يو شمير خيريه مؤسسې په پام کې لري چې له زيان رسيدونکو خلکو سره مرستې وکړي. د نړيوال غذايي سازمان (WFP) خيريه مرستو يو نيم ميليون (۲۰۰۰۰۰ تنه په کابل کې ۱۱۰۰۰۰ تنه په کندهار، ۱۹۰۰۰۰ تنه په جلال آباد ۲۳۱۰۰۰ په مزار شريف کې البته مخکې د ۱۹۹۷ کال له جګړو) اړو انسانانو سره د هېواد په ګوټ ګوټ کې مرستې کولې.

بې شکه چې دا ډول خيريه مرستې په داسې حال کې چې خلک د لنډې مودې په ترڅ کې د قحطی له خطر څخه ژغوري، خو د اوږدې مودې د پاره ډيرې نيمګړتياوې رامنځته کوي. څکه له يوې خوا خلک په مفت خورۍ روږدي کوي او له بلې خوا لتۍ او ناغيړۍ راپيدا کوي او د کرنې په سکتور کې د داخلي توليداتو د کمښت سبب کيږي.

## د بين المللی ټولنو بشری او پراختيايی مرستې:

په اتيا يمه لسيزه کې د مجاهدينو او روسی عسکرو ترمينځ د سختو جګړو باوجود، افغانستان له بهرنيو سرچينو څخه ډيرې مرستې ترلاسه کولې. په دې وخت کې پخوانی شوروي او متحدينو يې بلاعوضه مرستې د کابل حکومت په واک کې ورکولې. مخالف څواکونه هم د امريکا، اروپا او غربی هيوادو له سخاوتمندانه مرستو

مستفید کیدل.

د ملګرو ملتو د پراختیایي پروګرام (UNDP) د ګزارش مطابق په ۱۹۸۹م کال کې افغانستان ته د بهرنیو مرستو اندازه ۵ . ۱۵۲ میلیونه امریکایي ډالرو ته رسیده. له ۱۹۹۲م کال وروسته دوه اړخیزو مرستو افغانستان ته په حیرانوونکې ډول کموالی موندلی دی. بنایی اصلي علت یې د دولت د اساسي بنستیونو سقوط او له افغانستان څخه د بین المللی مالی ادارو وتل وي. بین المللی مالی اداري: نړیوال بانک، د پیسو بین المللی صندوق او نور بهرنی پراختیا یی بانکونه دي.

د څو وروستیو کلونو په ترڅ کې د دوه اړخیزو یا څو اړخیزو سرچینو له لاري افغانستان ته هیڅ ډول پور نه دی ورکړ شوی.

له یادو شویو ستونزو سره سره د بشری فعالیتونو او بیا رغاونی لپاره بهرنۍ مرستې د ملګرو ملتو د موسساتو او نورو غیر دولتی موسساتو له لارې د ۱۹۸۹ او ۱۹۹۲م کلونو په ترڅ کې په چټکۍ سره د زیاتیدو په حال کې وې. ځکه په دې وخت کې د سولې لری لیدا او د ملی پخلاینی پیدا کیدل لاروښانه ښکاریدل په ۱۹۸۸م کال کې افغانستان ته د چټکو بشری مرستو صندوق جوړ شو چې د ملګر ملتونو د بشری مرستو د هماهنګۍ دفتر په لاس اداره کیده. له ۱۹۸۸ تر ۱۹۹۲ م کال ۲۲۱ میلیونو ډالرو په حدود کې دې صندق ته د مرسته کوونکو هیوادو له خوا برابر کړی شوی و. له ۱۹۹۲م کال راپدیخوا د بشری مرستو او د بیارغاونی وړو فعالیتونو لپاره جمعی غوښتنو وکړای شول چې ۴۷۳

میلیونه ډالره د افغانستان لپاره راټولې کړي.

علاوه پر هغو مرستو چې د جمعي غوښتنو له لارې برابریږي د ملګرو ملتونو مؤسسات له خپلو اصلي بودجو (چې د هر هیواد ونډه پکې ښکاره ده) څخه هم کار اخیستی دی. په ۱۹۹٦ او ۱۹۹۷ کلونو کې د خوړونړیوال پروګرام (WFP) د ۲۷۰۰۰۰ متریک ټنو په اندازه د عاجلو مرستو او پراختیایي فعالیتونو لپاره خوراکي مواد په افغانستان کې مصرف کړیدي. په درې وروستیو کلونو کې د ملګرو ملتونو پراختیایي پروګرام (UNDP) د فقر ور کولو او د افغانانو ځواکمن کولو پروژو له لارې ۳۳ میلیون ډالره د هیواد په ۲۳ ولسوالیو کې مصرف کړیدي. نړیوالو غیر دولتي مؤسسو هم په وروستیو کلونو کې د بشري او بیارغاونې پروګرامونو لپاره د افغانستان په مختلفو سیمو کې ډیرې منابع په مصرف رسولې دي. بې له شکه چې دغو بهرنیو مرستو د افغانستان دریز مریز شوي اقتصاد په پیاوړتیا او د زیانمنو خلکو په ساتنه کې ستره ونډه ذرلودلې ده.

## روغتیا:

له جګړې دمخه روغتیایي خدمتونو په افغانستان کې هومره پراختیا نه وه موندلې چې وکولای شي د خلکو روغتیایي لومړنۍ اړتیاوې په تیره بیا په اطراف او بانډو کې ترسره کړي. په ۱۹۸۲م کال کې ٦۸ روغتونونه، ٤۸۳۸ بستره او ۱۱٦۰ تنه ډاکتران په افغانستان کې موجود وو. په کال ۱۹۹۲م کې د ماشومانو د مړینې اندازه په سلو کې ۱٦.۳ اټکل شوې وه ښایي د ارقم په وروستیو کلونو کې زیات شوي

وی، په هیواد کې منځنی عمر ٤٣ کاله اټکل شوی دی. په سلوکی تقریباً ٦٥ تر ٧٥ خلک په لویو ښارونو او له ۲۰ تر ۲۵ خلک په اطراف او بانډو کې له روغتیایی لومړنیو خدمتونو بې برخې دي.
په سلوکی تقریباً ٤٠ خلک په ښارونو او په سلوکی ۱۹ په اطراف کې د څښلو پاکې اوبه نه لري. له بلې خوا دغې ویجاړونکی جګړې په زرګونو معیوبین او معلولین یې د افغانستان د وروسته پاتې ټولنې د اوږو بارګرځولي دي.
همدا اوس د هیواد روغتونونه او صحی کلینیکونه په ډیر ابتدایي ډول د ملګرو ملتو او نورو غیر دولتی مؤسسو په مرسته فعالیت لري ملګري ملتونه او غیر دولتی مؤسسی د اړتیاوړ یوه اندازه درمل په ولسوالیو کې روغیتایی کلینیکونو ته برابروي چې په هیڅصورت د هغوی عاجلي اړتیاوي نشی پوره کولای. په ډیرو سیمو کې ساري ناروغۍ او نورې عامې ناروغتیاوې، لکه نس ناستې، ملاریا، د تنفسی جهاز انتانات او نور د مړینی د عمده عواملو څخه ګڼل کیږي.
ډیرو متخصصو ډاکټرانو او د روغتیایی برخی کارکوونکی د ناوړه شرایطو له امله له بدې ورځی له هیواده وتلی چې دا کار په روغتیایی برخه کې د متخصصینو د کمښت (په تیره نسایی - ولادی برخه کې) سبب شوی دی.
په ماشومانو کې سؤتغذی او له اوبو څخه راټوکیدلی ناروغۍ د هیواد په ځینو برخو کې د زیاتو ستونزو علت جوړوي. د هیواد په کلیو او بانډو کې د امیندوارو ښځو ډیره برخه د لنګون په وخت کې خپل ژوند له

# سریزه

د افغانستان ورو ستـه پاتی هیواد د دوولسیزو ویجاړوونکو جګړو په ترڅ کې د سیاسی، نظامی او اقتصادی بدلونونو شاهد وچې دا ګرده بدلونونه دد غه هیواد د ټولو اقتصادی او اجتماعی بنسټونو د ویجاړیدو سبب شوي دي. دغه اوږده جګړه له ورانیو او لوټ برسیره د زیاتیدونکو بدمرغیو او تکلیفونو لکه ډله ییزی وژنې، بیځایه کیدنې، د خلکو د مالونو د لوټ او تالان سبب ګرځیدلي دي. د هیواد ټول اقتصادی بنسټونه، لکه کانونه، سپکې او درنې صنایع، دولتی اداري، د استوګنی کورونه، د ټولیزو اړیکو سیستم، د ښوونې او صحی نظام او نور دد غې کور ګډی جګړې له امله تباه شوي دي. د ثور د اوومې له کودتا ځچې د افغانستان د خلکو د بدمرغیو پیل ګڼل کیږي، تردې پخواهم افغانستان د وروسته پاتوهیوادو په کتار کې ځای درلود او د سړي سر منځنی عاید یې ۱۳۰ امریکایی ډالره اټکل کیده.

(مینځنی عاید = د یوه ټولګی مجموعی عاید چې د ټولګی دوګړو پر تعداد وویشل شی.) په مختلفو هیوادو کې د خلکو د ژوند د سطحې د

لاسه ورکوي. اکثراً زړي بوډۍ چې روغتیایي ابتدایي ښوونې هم نه لري د لنگون ځارنه کوي.

## ښوونه او روزنه:

په بشري سرچینو کې ښوونه بهترینه پانگه اچونه گڼله کیږي. ځکه له دې لارې د اړتیا وړ متخصصین ټولنې ته وړاندې کیږي. له بله پلوه ښوونه او عواید د مزد په سطح او یا د ټولنې په سطح یو تربله گډه اړیکه لري. د جگړې نه د مخه ښوونیزې ادارې د دولت له خوا تقویه کیدلې. اوس دولتي او سیمه ییز مقامات د هیواد د اجتماعي چارو د دې حیاتي برخې د تمویل ځواک نه لري.

د سواد اندازه ۲۹ په سلوکې د نارینه لپاره او ۱٦ په سلوکې د ښځینه وو لپاره اټکل شوې ده. په ۱۹۹٤ کال کې تقریباً ٤٥ په سلوکې هلکانو او ۱۷ په سلوکې نجونو په مکتبونو کې نومونه ثبت کړي وو.

اوس د نجونو د مکتبونو ډیره برخه د طالبانو تر ولکې لاندې سیمو کې تړلې ده. یوازې د بدخشان په ولایت او د شمال اتحاد تر ولکې لاندې سیمو کې د نجونو مکتبونه پرانیستي دي.

د جگړې په ترځ کې تقریباً ۲۰۰۰ مکتبونه وران شویدي. د دې مکتبونو زیاته برخه د مرستو کوونکو مؤسسو له خوا بیا رغول شوي دي د هغه گزارش مطابق چې د نړیوال بانک تر ځارنې لاندې برابر شوی دی په ۱۹۹٦ کال کې تقریباً ٦۰۰ تر ٦٥۰ د ابتدایي دورې مکتبونه اولیسې فعالې وې. د ابتدایي دورې د زده کوونکو شمیره د جگړې له پیل نه مخکې ۸۳۰۰۰۰ زده کوونکو ته رسیده چې دا رقم تر ۱۹۹۷

کال پوری ۲۷۰۰۰ زده کوونکو ته راکم شوی دی. تر کال ۱۹۹۱ شپږ پوهنتونونه او د لوړو زده کړو مرکزونه لکه، د کابل پوهنتون، د پولیتخنیک انستیتوت، د طب انستیتوت، د ښوونکی روزنې انستیتوت او اسلامی پوهنتون په کابل کې او د هرات، جلال آباد او مزار شریف پوهنتونونه د محصلانو په مخ خلاص وو. د ۱۷۰۰۰ په شمیر د هلکانو او نجونو په ګډون شاګردان د لوړو زد کړو په دغو مرکزونو کې نومونه ثبت کړي وو. همدا اوس د دغو علمی مرکزونو دروازې د نجونو پرمخ تړلی دی. په اوسنیو شرایطو کې یوازې دوه د ښوونکو د روزنې انستیتو نه د ښځینه وو پرمخ د بدخشان په ولایت کې فعال دي چې د درسی موادو او مسلکی پرسونل له ستونزو سره مخامخ دي. د ښوونکو د معاش کموالی، د درسی موادو قلت، او د هیواد په سطح د تعلیمی نصاب نشتوالی د دولتی تعلیمی ادارو له عمده ستونزو څخه ګڼل کیږي. د ملګرو ملتونو مؤسسې او یو شمیر غیر دولتی مؤسسی د هیواد مکتبونو ته محدودې مرستې وررسوي چې په هیڅ ډول د دې مکتبونو لومړنی اړتیاوي نشی پوره کولای.

# د استفادې وړ منابع


۱- عبدالحق امیری- د ماسترۍ رساله- د افغانستان د اقتصاد لری لید د روسانو له اشغاله وروسته او وسله وال جهاد ۱۹۹۳ د رایت پوهنتون- د یتون ښار د امریکا متحده ایالتونه.

۲- عبدالحق امیری- د افغانستان د اقتصادی اوضاع تحلیل او د هغه رول د ښځو او ماشومانو په ژوند ۱۹۹۷ (د یونیسیف د درې کلن رپوټ د یوې برخې په توګه چې د هغوی په غوښتنه په پیښور کې برابره شوې وه).

۳- د افغانستان د جمهوری حکومت ګزارش - فبروری ۱۹۹۲ - د پلان وزارت - کابل افغانستان.

٤- د ملګرو ملتو د خوراک او کرنې دفتر (FAO) زراعتی ستراتیژی ۱۹۹۷ کال.

٥- د ملګرو ملتو د مخدره موادو د کنترول دفتر (UNDCP) د تریاکو د کرکلنۍ سروې. ۱۹۹۸ کال.

٦- عبدالحق امیری- افغانستان د یوبی حدو حصره تورم په درشل کې ۱۹۹٦.

۷- د بشری پراختیا ر ګزارش (UNDP) ۱۹۹٦.

۸- ستیف رودز - نړۍ د اقتصاد پوهانو په نظر کې - ۱۹۸٥.

۹- مکیش کپیلا - افغانستان ته د برتانیې د مرستو څیړنه - کال ۱۹۹٥.

## دليکوال لنډه پېژندنه:

*نوم او تخلص : عبدالحق اميری

*د زوکړې کال : ۱۳٤٤ هـ . ش بهارک، بدخشان.

*زده کړې: لومړنۍ او منځنۍ د بدخشان د بهارک ولسوالۍ ثانوی دوره د فيض آباد ښار، پامير ليسه.

- ليسانس - د نړيوال اقتصاد پوهنځی - د اسلام آباد اسلامی نړيوال پوهنتون.

- MSC (په اسلامی او پراختيايی اقتصاد کې) د نړيوال اقتصاد پوهنځی.

- MS (په عملی او اجتماعی اقتصاد کې) درايت پوهنتون، ډيتون ښار، د امريکا متحده ايالات.

وظيفه : - د پلان او پلټنې په څانګه کې د پلټنې مشاور د پيښور تعليمی مرکز - پاکستان.

- د افغانستان لپاره د ملګرو ملتو د بشری مرستو د انسجام دفتر د پروګرام مدير، اسلام آباد - پاکستان

پر تله کولو لپاره معمولاً د سړي سر عايد چې د عايد دويشلو د ډول ښکارندوی دی کار اخيستل کيږي. د يادولو وړده چې د حسابولو دغه معيار هم څه نيمگړتياوې لري چې تر ټولو مهم يې د هيواد دوگړو ترمينځ د عايد مساويانه ويش دی.

په ۱۹۷۹م کال کې د هروګړي داخلي ناخالص توليدات ۱٤۳ او د هر وګړي ملي ناخالص توليدات ۱۷۰ ډالره اټکل شوي وو. داخلي ناخالص توليدات د توليد شوو شيزونو او خدمتونو د بازار په بيه له ارزوني وروسته يو پريل باندې د هغو دارزښت له زياتولو لاس ته راځي. ملي ناخالص توليدات له داخلي ناخالصو توليداتو سره د هيواد دوګړو په بهر کې د پانګې اچونې له زياتولو او د داخلي بازار د عايد له کسر څخه لاس ته راځي.

پخوا اقتصادي عمده فعاليتونه د حکومت له خوا څارل کيدل، يوازې د کرنې سکتور او يوه اندازه هم تجارت د خصوصي سکتور په واک کې و. دې وضعيت د جګړې په کلونو کې بدلون وموند. د کوچنيو پانګه والو د هڅونې په خاطر د افغانستان دولت په ۱۹۸۷م کال کې مشورتي شوری جوړه کړه، که وکولی شي خصوصي سکتور ته پراختيا ورکړي. د جګړې په ترڅ کې د مرکزي دولت پدل ورو ورورا ولويد او سيمه ييزو سياسي او نظامي ځواکونو د هيواد په مختلفو برخو کې د خپلې خوښې او يو څه خود مختارې ادارې جوړې کړې. دې کار سره له دې چې انارشيزم او بې بندوبارې رامينځته کړه د خصوصي سکتور د هڅونې او پراختيا سبب هم ګرځيد.

د ملګرو ملتو د پراختیایي پروګرامونو (UNDP) دفتر د اټکل له مخې په ۱۹۸۹ م کال کې د هیواد د داخلي تولیداتو په سلوکې ۶ . ۸۱ له خصوصي سکتور څخه برابریدل چې د هغو په سلوکې ۹۹ یې د کرنې سکتور له محصولاتو لاس ته راتلل. د ۱۹۹۲ م کال په خپل مینځي نښتو کې د هیواد ډیر صنعتي موسسات ویجاړ، مالونه او ماشین آلات یې تالا شول.

د تاسیساتو لږ شمیر چې په ځینو ښارونو کې د جګړې له ګواښ څخه خوندي پاتې دي لا فعالیت لري.

په کلیو او بانډو په تیره د هېواد په شمالي برخو کې د کورنیو له اقتصاد سره حرفه یي تولیدات مرسته کوي. غالۍ او تغراو بدل، خامک ګنډل او نور رواجي لاسي صنایع اکثراً د ښځو په لاس سرته رسیږي او د نارینه وو په واسطه بازار ته وړاندې کیږي.

په اوسني روان حال کې د هیواد اقتصاد د بهرنیو هیوادو د سمدستي بشري مرستو، له د ښمنو ډلو سره د هغوی د بهرنیو ساتونکیو له دوه اړخیزو مرستو، د مخدره موادو د تولید، د کوکنارو کر او بهرني تجارت په ذریعه ساتل کیږي. کرنه او مالداري د هیواد د اقتصاد د عمده عناصرو په څیر خپل اهمیت ساتلی دی.

# د افغانستان جغرافیایی او اقلیمی وضعیت

افغانستان په وچه کې چاپیر یو هیواد دی چې په منځنۍ آسیا کی ځای لری. د افغانستان گاونډیان د ایران اسلامی جمهوری لویدیزه خوا، ترکمنستان، ازبکستان او تاجکستان په شمال کی، د چین ولسی جمهوریت په شمال ختیځ او پاکستان یې په سهیل او سهیل ختیځ کې دي. سره هوا د کرنې ورزمکو لروالی، د کرنې د وسایلو دودیزتوب او د اوبه خور نیمگړی سیستم، د کرنې له پرمختللیو لاروچارو سره د بزگرانو نابلدتیا د متخصصینو او کرنیزنویو آلاتو لږوالی او د کرنې چاروته د مسوولو مقاماتو نه پاملرنه له هغو عواملونه دي چې په خپل وار د هیواد د اقتصادی وروسته پاتې والی سبب شوي دي. د هیواد آب و هوا په مختلفو برخو کې توپیر سره لري. په سهیل او سهیل لویدیځ ولایتونو کې هوا نسبتاً وچه ده. د هیواد په ډیرو برخو کې د هوا وضعیت د للمی کرکیلی لپاره چندان وړتیا نه لري. د ملگرو ملتو د کرنی او خوراک دفتر (FAO) د ۱۹۹۷ م کال له گزارش سره سم د بدخشان په ولایت او مرکزی غرونو، مشرقی او جنوبی کې کافی باران اوري. په دې سیمو کې کنگل کیدل محدودو کوونکی عامل دی. ختیز او جنوبي ولایتونو کې لږ باران اوري خو په دې سیمو کې د کرنې فصل

په کافي اندازه اوږد او آبي زمکې اکثراً دوه فصله دي.
په للمي زمکو کې د کافي باران نشتوالي هغه هم په مناسب وخت کې د کرنيزو توليداتو د کمښت سبب گرځي.
د (FAO) د ۱۹۹۷ کال له گزارش سره سم د هيواد د اوبو د سرچينې نژدې ۸۰ په سلو کې د هندوکش له غرونو دي. د هيواد آبي زمکې ۵ . ۳ ميليونه هکتاره اټکل شوې چې د هيواد د پراخوالي په سلوکې ۵ . ۵ جوړوي. له دې ټولگې په سلوکې ۱٤ دو فصله، ۲۲ يو فصله او ۵ ، ۲ بنونه دي. او په سلوکی ۲۲ نورې هغه زمکې دي چې په وار سره کرلې کيږي. للمي زمکې ۸ . ٤ ميليونه هکتاره اټکل شويدي چې د هيواد ټولې خاورې په سلوکې ۸ جوړوي. د هيواد د خاورې په سلوکې ۷۰ له لوړو او څرځايونو جوړه ده او ۹ ، ۲ يې په ځنگلونو پوښلې ده.
طبيعي آفتونه، لکه نيزونه، شديدې زلزلې، د زمکې ښوييدنې او نور په ځپل شويو سيمو کې د ربړوونکو اقتصادي ستونزو سبب گرځي. په کال ۱۹۹۱ کې د ريکتر په کچ ۵ ، ٦ درجې يوې شديدې زلزلې د هيواد په شمال کې په دولتي اوشخصي املاکوکې ډيرې ويجاړ تياوې راوستې او ډير خلک او مواشي پکې سټ شول. په همدغه وخت کې ويجاړوونکې نيزونه په جنوب لويديزو ولايتونو کې زښت ډير وراني پيښې کړ. په کال ۱۹۹۳ م کې دريکتر په کچ ٤ درجې زلزلې هم په شمال کې د ډيرو ورانيو سبب شوې.
د ۱۹۹۸ کال په ژمي او پسرلي د تخار او بدخشتان په ولايتونو کې د دوو مدهشو زلزلو شاهدان وو چې د دريکتر په کچ ۱ ، ٦ او ٦ ، ٦ درجې

وې چې درستاق، چاه آب او شهر بزرگ په ولسواليو کې يې په لسګونو کلي په کنډوالو بدل کړل. د دغو زلزلو په اثر له ۴۰۰۰ کسانو نه زيات مړه او سلګونه نوريې خپل کورونه او شته (که څه هم نيشتوکي وو) له لاسه ورکړل. د پروسږ کال ژمی (فبروری ۱۹۹۹) زلزلې د وردګو او لوګر ولايتونو کې نژدې ۱۶۰۰۰ کورونې وځپلی. که څه هم د مرستې رسولو موسسی، لکه ملګری ملتونه، نړيوال سره صليب او نورو غير حکومتی مؤسساتو په چټکۍ له ځپل شويو خلکو سره د مرستی له پاره و د انګل او لومړنۍ اړتياوې، لکه خوراک، کمپلې او خيمې يې پر خلکو وويشلې، سره له هغو له طبيعی آفتونو نه زيږنده ويجاړتياوو د هغو سيمو د خلکو له کړاوه ډک ژوند يې لا پسی ستونزمن کړی دی.

## مهاجرت او بيځايه کيدنې:

له غير رسمی اټکلونو سره سم تر ۱۹۹۶م کال پورې د هيواد دوګړو شمير ۲۱ ميليونه تنه اټکل شوی دی چې په دې رقم کې بنايي له هيواده بهر مهاجرين نه وي راغلي او دا ټول ارقام اټکليز دي. کومه سر شميرنه چې د شاهی او محمد داؤد خان د جمهوري حکومتونو په وخت کې په نظر کې وچې وشی سرته ونه رسيده او د حفيظ الله امين د اټکليزې سرشميرنی پايلې دومره بې بنسټه او مسخره وې چې په خاطرو کې هم نه دي پاتې.

په افغانستان باندې د سرو لښکرو د تيري په اثر د پنځو ميليونو تنونه زيات افغانان پاکستان او ايران ته مهاجر شول. د روسی ځواکونو له وتلو وروسته له دښمنيو ډکو جګړو په اوږدو د مهاجرت خوځښت په

# د افغانستان اقتصادي حالت ته یوه کتنه



عبدالحق امیری

# د افغانستان اقتصادي حالت ته يوه کتنه

(وروستی دوې لسيزې)




لیکوال

عبدالحق امیری




ژباړن

صلاح الدين

۱۳۷۸

## د کتاب پیژندنه:

*د کتاب نوم : د افغانستان اقتصادي حالت ته یوه کتنه

*لیکوال : عبدالحق امیری

*ژباړن : صلاح الدین

*کمپوزر : محمد وسیم عزیز

*دچاپ کال : ۱۳۷۸/ ۱۹۹۹م

*دچاپ ځای : پیښور

بسم الله الرحمن الرحیم

اریک له دوو کلونو راهیسې د افغانستان بېلابیلو ولایاتو ته د گرځنده کتابتونونو دلېږلو پروگرام جوړ کړی دی؛ گرځنده کتابتونونه د اوسپنیزو صندوقونو په بڼه جوړ شوي، د هېواد په یوه برخه کښې په یوه ځانگړي ځای کښې اېښودل کېږي د سیمې خلک راځي کتابونه په امانته توگه اخلي، لولي یې خپلو شا او خوا نالوستو کسانو ته یې اوروي، بیا یې بېرته راوړي او په بدل کښې بل کتاب اخلي او په دې ترتیب په سیمه کښې د کتابتون ټول کتابونه لوستل کېږي او بیا دا گرځنده کتابتون بوې بلې سیمې ته وړل کېږي.

موږ هڅه کړې دې کتابتون ته داسې کتابونه راغونډ کړو چې له یوې خوا یې ژبه ساده او اسانه او له بلې خوا د خلکو د استفادې او اړتیا وړ خبرې او مطالب ولري او له دوی سره په روان ژوند کښې عملي مرسته وکړي، لکه د کرنې، لاسي کارونو، چرگانو روزنې او نورو چارو کښې.

موږ په دې ترڅ کښې دا سروې هم کوو چې خلک نورو کومو آثارو او کوم ډول موادو ته اړه لري، چې په دې لړ کښې موږ د دوی گټې غوښتنې او د اړتیا وړ مواد لست کړل خو متأسفانه په دې برخه کښې مو کتابونه ونه موندل

چې د دوی په گرځنده کتابتونونو کښې یې ځای پر ځای کړو.
د دې تشې د ډکولو له پاره مو یو کال وړاندې « یونوچا » ته وړاندیز وکړ چې مالي مرسته وکړي او موږ د دې گرځنده کتابتونونو له پاره په خپله یو شمېر د اړتیا وړ کتابونه چاپ کړو او د خلکو غوښتنو ته په خپل لاس د عمل جامه ورواغوندو؛ هغوی زموږ وړاندیز ومانه او یو موټی پیسې یې راکړې. موږ د دې له پاره چې کار سیستماتیک او ښه گټور شي دې کار ته مو د تهیې یوه ډله وټاکله چې هم زموږ د اداري غړي پکښې دي او هم د هېواد یو شمېر مجرب او له دې کار سره علاقمند لیکوال او مؤلفین چې په گډه به کار کوي، د اړتیا وړ کتابونه به یا په خپله او یا د هغو لیکوالو په وسیله چې په ټاکلي موضوع کښې تخصص او مهارت لري، تهیه کوي او د کتابونو د پلانگذارۍ، تهیې، چاپ او وېش ته د چمتو کېدلو ټول پړاوونه به یې په گډه پر مخ بیایي. دا ډله د افغانانو له خواخوږې میرمن نانسي هچ دوپرې، حبیب الله رفیع، سر محقق زلمی هیواد مل، حسین فخری، محمد فهیم رحیمیار او محمد رفیع څخه جوړه ده.
موږ د هېواد په کلیو، بانډو او ښارونو کښې د گرځنده کتابتون له ټولو گرانو لوستونکو څخه هیله کوو چې خپلې اړتیاوې، غوښتنې او پوښتنې راولیږي او د هېواد له ټولو پوهانو او عالمانو څخه هیله لرو چې په دې لاره کښې را سره مرستې شي چې په دې برخه کښې له ښه نه ښه کتابونه وړاندې کړای شو!

په درنښت

« د اریک گرځنده کتابتونونو اداره »

# فهرست


| عنوان | مخ |
|---|---|
| پیلامه | ۱ |
| سریزه | ٤ |
| د افغانستان جغرافیایي او اقلیمي وضعیت | ۷ |
| مهاجرت او بیځایه کیدنې | ۹ |
| کرنه او مالداری | ۱۱ |
| ځنګلونه او څړځایونه | ۱۵ |
| طبیعي سرچینې او انرژي | ۱۷ |
| صنایع او لاسي کارونه | ۱۹ |
| د کار بازار | ۲۲ |
| کورنۍ او بهرنۍ سوداګري | ۲٤ |
| مالي سیاست او دولتي مصارف | ۲۷ |
| د بانکداری سیستم | ۲۹ |
| پیسې او بې جلبه تورم | ۳۱ |
| ترانسپورت او ملکي هوانوردی | ۳٤ |
| مواصلات او اطلاعات | ۳۷ |
| کور جوړول | ۳۸ |
| بیوزلي او سیمه ییزې نا اندو لي | ٤۰ |
| د خوراکي موادو شته والی | ٤٤ |
| د بین المللي تولنو بشری او براختیا یی مرستی | ٤٦ |
| روغتیا | ٤۸ |
| ښوونه او روزنه | ۵۰ |
| د استفادې وړ منابع | ۵۲ |